په حقیقت کی د خلقیانو د غه عمل د روسانو د وژنی له پروګرام سره سمون نه درلود ځکه چی روسانو نه غوښتل چی د دوی ګوډ اګی رژیم سمدلاسه په پراخه وژلو لاس پوری کړی او په دی توګه د خلکو د کرکی اوغضب اورته لمن ووهی بلکه هغوی خپل پروګرام د خپلو پخوانیو تجربو په پام کښی نیولو سره د اسی برابر کړی و چی د هغه په اساس یی غوښتل په لومړی مرحله کښی خپل پوه او نه پخلاکید ونکی مهم مخالفین له مینځه یوسی خود خلقیانو پراخه وژنو په غیر ارد ی ډول په افغانستان کښی د روس د دسیسو په شنډولو کښی تر زیاته حده پوری برخه واخیسته .

د ثورله کود تا څخه زیاته موده لا نه وه تیره شوی چی د کمونیست ګوند د خلق اوپرچم څانګو ترمنځ د حکومتی او حزبی مقامونوپرسر سیالی خپل لوړ پراوته ورسید ه

حفیظ الله امین د نورمحمد تره کی په مشری چه د پرچمیانو لخوا د امریکا د جاسوس په نوم تورن وو په دی بریالی شوچی کارمل او د هغه نورملګری د حکومتی او حزبی

قدرت څخه بې برخې کړی . د ۱۳۵۷ کال د سرطان په ۱۴ نیټه کښې ببرک کارمل ، چې په هغه وخت کښې د انقلابي شورا معاون و ، له خپلې وظیفې نه گوښه او په چکوسلواکیا کښې د افغانستان د سفیر په توگه وټاکل شو . د غه راز د پرچم د ځانگې نورستر غړې هم له حکومتي او حزبي مهمو ماموریتونو څخه برطرف او د سفیرانو په نامه له هیواد نه تبعید کړای شول . وروسته بیا یو شمیر نور پرچمیان د حکومت پرضد د توطئه کولو په نوم بندیان شول .

روسانو د ی لپاره چې په افغانستان کښې خپلو تیریواو لاس وهنوته قانوني رنگ ورکړي د ۱۳۵۷ کال د قوس د میاشتې په څوارلسمه نیټه یې د نور محمد تره کې په مشرې خپل گوډاگې رژیم سره د همکاری او ښه کاوند تیوب په نامه یوتړون لاس لیک کړچې په حقیقت کښې روسانو ته د افغانستان د پلورلو سند وو او په افغانستان باندې یې د روس فوځې یرغل لپاره لاره هواره کړه . د غه تړون په داسې وخت کښې لاس لیک شوچې په هیواد کښې د کمونیستي حکومت غیرانساني کړونو

پرضد پراخه پاڅـونونه او وسله وال جهاد پيل شـوی وو او روسانو ته دا حقيقت جوت شوی ووچی خلقيا ن د حکومت د چـا رو د سمبال او د خلکو د کرارولو تـوان نلری نو مجبور وچی د خپل مستقيم تيری لپاره يوسنـد، که څه هم د بين المللی معيارونوسره سمون ونلـری، برابـرکـړی .

په دغه وخت کښی حفيظ الله امين، چی په اصطلا ح د ثورد انقلاب قوماندان او د نورمحمد تره کی د وفـادا ر شاگرد په نوم د خلقيانو له خواستايل کيده ، ورځ په ور ځ په حکومت اوگوند کښی خپل د ريخ ټينګاوه خوروسان له دی وضعی څخه نه يوازی راضی نه ووبلکه په دی لټـه کښی ووچی حفيظ الله امين له منځه يوسی ځکه، څرنګـه چی مخکښـی وويـل شو ، حفيظ الله امين د روسانو له نظره يوه ناوړه څيره وه د هغه چال چلنداوخود خواهی داسی يوشکل د رلود چه په افغانستان کښی د داسـی يوکمونيستی نظام د ټينګيـدو پـه لار کښی خنډ ووچـه له يوی خوا د خلکولخوا د هغه حمايت وشی اوله بلی خوا په افغانستان کښی دکريملين دګټوساتندوی وی .

د ۱۳۵۸ کال سنبلې د میاشتې په ۱۴ نیټه، کله چې نورمحمد تره کي په هاواناکښې د ناپیيلوهیواد ونــو د مشرانو په غونډو کښې له ګډون نه وروسته هیواد تــه د راستنید و په لار کښې مسکو ته لاړ، روسي مشرانـــو نوموړی د ې ته راضي کړ چې باید د حکومت د چـارو د سمون او د افغانستان د مسلمانو خلکود وګړنیزوپاخونونو د کرارولوپه خاطرحفیظ الله امین له مینځه یوســـــی. روسانو په د ې ډول غوښتل چې هم د امین له شره ځان خلاص کړي اوهم پرهغه باندې د خلقیانود ناوړواسلامي ضد اوانساني ضد اعمالو په تپلوسره د خلکو ملي پاخــون د یوه غولوونکي تحول د رامینځ ته کولوله لارېکرار کړي. خود روسانو د غې نقشې برعکس نتیجه ورکړه اود ې پـــر ځای چې حفیظ الله امین ووژل شي په خپله تره کي د حفیظ الله امین منګلوته ورغی. د هغوډ زو په نتیجـــه کښې چې د روس د سفیرالکساند رپوزانوف په حضور کښې پرحفیظ الله امین باندې وشوې، سید داود تـــرون د حفیظ الله امین نژد ې د وست اود تره کي یاور، نواب د اګسا (د افغانستان د خلکود ګټوساتونکې اد اره) معاون

اوخیر محمد دامین یاور ووژل شول اوپه خپله امین تېږی شوه د ۱۳۵۸ کال دسنبلې په ۲۶ نېټه دراډیـوا و تلویزیون له لارې داسې یوخبرخپورشو چې ګواکـــــــې نورمحمد تره کی د ناروغی له کبله دکمونیست ګونـــد او دانقلابی‌شورا له مشرې نه استعفاء کـړې ده. دغه راز په همدغه شپه دګوند اوانقلابی شورا د مشرپه توګـــــه د امین د ټاکل کید وخبر هـم خپورشو.

د میزان په لومړی نیټې دکابل راډیو اوتلویزیـون د یولنډ خبرپه ترڅ کښې د تره کی‌د مړینـــی‌اعلان‌وکـړ. د تره کی د مرګ علت داوږدې مودې ناروغی وبلل شـــو.

څه موده وروسته امین په ناڅاپی ډول خپل تـهول د فترونه اود هستوګنی وسایل له ارګ څخه د دارالامان د تاج بیګ د غونډ ی مانې‌ته‌ولیږد ول . سربیره پـرد ی د راډیواوتلویزیون له لارې اعلان وشوچی‌دکابل‌ښاریـا ن باید د خپلوکورونوکړکیوته توری ډبلی‌پرد ی‌برابری کړی او د خطر د زنګ په آورید لو سره د ی کړکیوته پرد ی‌واچو ی اوټول چراغونه د ی مړه کړی .

دغه حقایق ښیـــئی چی روسانود ی لپاره چی د

خپل مستقیم تیری د پاره لا ره هواره کړی او امین چــــی د هغوی له نظره یوه ناوړه خیره وه په یوه گوښـــــه او خوندی ځای کښی په کراره له مینځه یوسی نوهغه یـــی د پاکستان یا ایران لخواد یوه احتمالی هوا یی برید ځخه ویرولی وو.له همدی کبله وو چی امین د پاکستـــــان د بهرنیو چارو وزیر آغا شاهی ته د افغانستان نه د کتنـــی بلنه ورکړه ترڅو له هغه سره د افغانستان او پاکستـــا ن ترمینځ د اړیکو د ښه کید وپه هکله خبری اتری وکړی ا و د پاکستان له پلوه ځان ډاډه کړی . د افغانســــتا ن راډیو او تلویزیون د قوس په ۲۶ نیټه د یوه خبرپه تـــرځ کښی اعلان وکړ چی د پاکستان خارجه وزیربه د جــد ی په لومړی نیټه له کابل ځخه خپله کتنـــه پیل کړی خو د واوری د زیات اورښت له کبله د غه سفروځنډ یـــد ه او هیڅکله ترسره نشو .

داخبره ښائی رښتیاوی چه امین د روسانود پلا ن په خلاف د چارواگی په لاس کی ونیولی مگر په عین حال کښی امین هڅـــه وکړه چی مسکووربا ندی اعتماد وکـــړی او د غه اعتماد د را جلبولو په لا ره کښی یی کوشش وکـــړ

چه هغه سیاستونه عملی کړی چه روسانود څه مودی راپدیخوا د کابل کمونیستی حکومت د پاره جوړکړی وو . د دغه سیاست طراح یو روسی پوخ او سابقه لرونکی د پیلومات، واسیلی سافرانچوک وو . د سافرانچوک پلان دا وو چه د کابل کمونیستی حکومت، په داسی حال کښی چه باید په پوره توګه د مسکود سیاست اوګتو ساتندوی پاتی شی ، داسی یوه بڼه غوره کړی چه د خلکو پراخی پرګنی د هغه نه حمایت وکړی د دغه پلان مهم ټکی په لاندی ډول دی :

۱ ــ د ټولو سیاسی بند یانوخوشی کول ،

۲ ــ د لوئی جرګی د یوی غونډی جوړل اوپه هغه کښی په افغانستان کښی د کمونیستی نظام د راتګ او د هغه سره د شوروی اتحاد د هراړخیزو "مرستو" ملاتړ کول ،

۳ــ د کمونیستانولخوا ظاهراً د اسلام د دین د اساساتو احترام کول ،

۴ــ په حکومت کښی د داسی عناصرورا وستل چی ظاهراً د کمونیست د ګوند غړی نه وی ،

۵ـ د پلار وطن د ملی جبهی جوړول ،

۶ـ خصوصی پانګوته اجازه ورکول چه د هیواد په اقتصادی وده کښی برخه ولری او

۷ـ د کمونیست ګوند د پرچم او خلق د فراکسیونونو ترمنځ د شخړو لیری کول .

(باید وویل شی چه د امین ځخه وروسته کارمل او د غه ړول اوس نجیب الله هم د سافرانچوک د د غه پلان په تطبیقولو بوخت د ی ، بی له د ی نه چه په هغه‌کښی کوم بریالیتوب تر لاسه کړی ) .

امین د خپل قدرت د لنډ ی مود ی په‌د ورەکښی ډ یر کوشش وکړ چه د غه پلان تطبیق کړی‌خوروسانود خپل‌عزم نه چه باید امین‌له منځه لا ړشی‌لاس وانه خیست .

د قوس د میاشتی په وروستیوشپــوورځوکښــی غربی مطبوعاتو د اسی خبرونه خپاره کړل چی‌روسی‌عسکر پـــه افغانستان کښی لیدل شوی او روسان هغه هیواد ته د لا زیاتو عسکرواو نظامی مهماتو د لیږد ولولپاره تیار ی نیسی .

امین د قوس په ۲۵ نیټه د غربی مطبوعاتو د د غـــو

ځرګند ونو د رد ولوپه ترخ کښې وويل چې د شوروی عسکر په جنګ کښې ګډون نلری . د وه ورځې وروسته د مسکو راډيو پرته له دې چې په افغانستان کښې د روسی قواوو د موجوديت په هکله څه ووايي د امين د رژيم د قواو او د افغانستان د مجاهدينو تر منځ جګړه کښې يې د هغوی ګډون رد کړ . د غه راز د مسکو راډيو د جدی د مياشتې په لومړی نيټه د خپلی فارسی ژبې په خپرونه کښې وويل چې په افغانستان کښې د شوروی وسله والو قواوو د ځای په ځای کيدو په هکله ريپوټونه ټهول د روغ دی او زياته يې کړه چې د شوروی سياست د پوره برابری اود نورو هيوادونو ملی حاکميت اود خاوری تماميت ته د احترام کولو او د هغوی په کورنيو چاروکښې د لاس نه وهلو پر بنسټ ولاړ دی . د جدی په د وهمه ورځ د براوډا ورځپاڼې وويل :

" د غه تورونه چې شوروی جنګی واحدونه افغانستان ته لېږد ول شوی د ځرګند وجعليا تو سبودونکی دی او د هغوی هدف دا دی چې د افغانستان خلک د هغوی له ريښتانيو د وستانو اوملګرونه بيل کړی ."

سربیره پردی روسی مطبوعاتو ، امین‌اود شاه‌ولی په ګډون د هغه د رژیم نوروغړو په وار وار افغانستان ته د روسی عسکرو د لیږد ولواو له مجاهد ینوسره په جګړو کښی د هغوی د ګډون په هکله د لوید یزو مطبوعاتو خرګند ونی رد کړی ۰

خوحقیقت دادی چی د روسیی د کمونیست ګوند سیاسی د فترد ۱۳۵۸ کال د قوس د میاشتی‌په‌پنځمه نیټه پرافغانستان‌باندی د روسی‌عسکرود تیری په‌هکله پریکړه کړی وه او بوشمیر روسی عسکر پخوا افغانستان ته راغلی وو او د بګرام په هوایی ډګر کښی ځای په ځای شوی وو ۰ د غه راز د افغانستان‌اوروسی د ګډو پولو په هغه خواکښی روسی‌زیاتوعسکری قطعوافغانستان ته د د راننوتلو تیاری نیوه ۰ د د غو ترتیباتو د نیولو سره جوخت روسی مقامات د امین په له مینځه وړلو لګیاوو اوغوښتل یی چی امین په کراره له مینځه یوسی ۰ اسنادښئی چی د روسیی‌دکورنیوچارود وزارت معین اود پولیسو جنرال پاپوتین اوبل مجهول‌الهویه جنرال په کابل کښی د روسی په سفارت کښی د امین

# د یرغل نه مخکښې

روسان له پخوا زمانی څخه یدی تکل کښی وٴ چی خپله امپراتوری شاوخوا سیمو اوپه تیره بیا د جنوب او جنوب لوید یزو خواوته وغزوی . له اوولسمی عیسوی پیړی څخه راپدیخوا ، کله چی د انګریزانو حکومت د هند سره د سوداګری دګټورو اړیکو په ټینګولو بریالی شو ، نوروسی امپراتور لوی پیترسره دا وسوسه پیدا شوه چی دی هم د هند نیمی وچی ته د رسید و لپاره یوه ممکنی لاره پید ا کړی او د دغه هدف د ترلاسه کولولپاره یی د خپلی امپراطوری جنوب خواته مخه کړه . تزاری امپراطوری د ۱۸۳۰ عیسوی کلونو په شاوخواکښی د منځنی آسیا ځینی هغه اسلامی امارات ونیول چی د اروپااوچین ترمنځ تجارت باندی ئی پوره لاس بری د رلود اود اروپا د تیاری دوری په جریان کښی یی د نړی علوم خوندی ساتلی وو او غنایی وربخښلی وه .

له مسکوڅخه د جنوب اوجنوب ختیځ خواته د روسانو یون اوله کلکتی څخه د شمال لوید یز لوری ته

د وژلو او په افغانستان باندی د روسی عسکرود تیری په هکله د توطئی په ترسره کولو بوخت وو۱.

پاپوتین د قوس د میاشتی په ۱۰ نیټه افغانستان ته د خپل رسمی سفر په ترڅ کښی ماموریت درلود چی د امین د له مینځه وړلو لپاره یوپلان برابرکړی.

د افغانستان دپیښوځینی څیړونکی په دی عقیده دی چی پاپوتین د خپل رسمی سفر له پای ته رسیدو نه وروسته بیا په پټه توګه افغانستان ته ولاړ څو دامین د وژلو پلان ترسره کړی خو ناکام شو. د قوس په ۲۶ نیټه د جمهوری ریاست په قصر کښی د زی وشوی چی په هغو کښی د امین بوه پښه ټپی شوه او اسد الله امین د هغه وراره او د کام د جاسوسی اداری مشر لږ څه سخت ټپی شو او د تداوی د پاره روسی ته ولیږل شو.

د احی ولی پاپوتین د امین د وژلو لپاره ګمارل شوی وو یادا چی نه پیژندل شوی جنرال څوک وو اود روسی عسکرو د تیری اوبرید په ترسره کولو کښی یی څه نقش درلود زمونږ د د غه بحث موضوع نه ده بلکه زمونږ هدف دادی چی ثابت کړو روسانو له ډیر پخوا

راهیسی د یوه گوډ اگی حکومت د رامینځ ته کولو لهلا ری دافغانستان دلاندی کولو پریکړه کړی وه او د غه هدف ته د رسید و لپاره تره کی ، امین ، کارمل اوداسی نور یوائحی وسیلی وی او د روسانود استعماری هدف پـــه مقابل کښی یی هیڅ ارزښت نه درلود .

## د یرغل په شپواو ورځو کښی

د جدی د شپږمی نیټی له فاجعی نه لږځه مخکښی پر افغانستان باندی د روسی عسکرو د برید په هکلـــه د لوید یزو مطبوعات څرگند ونو سره جوخت کابل تـــــه د د رند و بار وړونکو الوتکو پرله پسی اوشپه او ورځ غیـــر عادی تگ او راتگ د هیواد خلکو اوپه تیره بیا د کابـــل ښاریانو ته زیاته اندازه ویره او تشویش پید اکړ .

د بگرام په فوځی هوایی ډگر او د کابل بهبین المللی هوایی ډگراوحتی د کابل د ښارپه ځینو برخوکښـــی د روسی عسکرو اوټانکونو د لیدل کید و آوازی خپری شوی . د جدی د فاجعی نه یوائحی یوڅو ورځی مخ کښـــــی د راډیو کابل عسکری محافظینو یوټانک چی روسی عسکر

پکښې سپاره وود رولی وو . روسی عسکرو د افغانی عسکرو د پوښتنو په ځواب کښې ویلی وو چی د وی د شوروی تعلیمی واحد له ډلی څخه د ی او غواړی د خپل مشرپه امر مکرور یانو ته لاړ شی او د خپل یوه بل مشرد زیږید نی د کالیزی په غونډه کښې برخه واخلی . او پس له هغه یی خوشی کړی وو .

د د غوټولو حقایقو په پام کښې نیولوسره د افغانستان خلک یوی ناوړی پیښې ته په انتظار کښې وو . او بالآخره فاجعه پیښه شوه .

د جدی د میاشتی په ۶ نیته د پنجشنبه د ماښا م د ۷ بجو په شاوخواکښې یوی سختی چاود نی ټول کابل ولړزاوه او له هغی سره سم تیلفونی اړیکی قطع شوی. ور پسی د ماشیند ارو ډزی پیل شوی . دګورینو چارو د وزارت په شاوخواکښې رسامی سری مرمی هواته پورته شوی . د ۸ بجوپه شاوخواکښې د تلویزیون خپرونه په ناخاپی ډول قطع شوه . راډیویی خپرونه که څه هم بنده نشوه خو غیر عادی حالت پکښې رامینځ ته شو. د اتوبجوخبرونه چی په معمولی ډول د وو تنو ( نارینه

اوسېځینه ) نطاقانولوستل په دغه شپه یوتـــن ( نارینه )
نطاق ولوستل ۰ د نطاق په آوازکښې یو ډول ویره او
ډار نغښتی وو۰ د کابل ښاریان د دغو غیرعادی حالاتو
په لید وسره پوه شول چې کومه مهمه پیښه په جریــــان
کښې ده ۰

د ازبکستان د جمهوریت د ترمزد ښار څخه چه پکښـــی
مارشـــال سرګـــی سوکولوف د قوماندہ لـــه یـــوہ خاص
مرکز نه په کابل کښې د روسی عسکرو د عملیاتولا رښوونـــه
کوله ، یو روسی راډیویی استیشن د کابل راډیـــود
خپرونو په څیر خپرونه پیل کړه ۰ په دغه وخت کښـــی د
کابل راډیو عادی خپرونی جریان درلود د شپی په اتو
بجواو ۴۵ دقیقو د تـــرمز راډیو د کابل رادیو خپرونه
ترخپلی اغیزی لاندی راوسته اودکارمل وینایی خپـره
کړه ۰ د وینا متن په لاندی ډول وو :

" ګرانو وطنوالو !

تاسوته چی ترهمدی شیبی پوری د حفیظ اللــــه
امین، دغه دامریکاد امپریالیزم اجنـــټ د خونړی دستګاه
او دهغه د ډلی تېلی له سسختو ځورونواوشکنجو ســـره

مخامخ وی ، زیری ورکوم چه د آزادی اونوی ژوند ورځ رارسیدلی ده. نن د امین د شکنجی ماشین د ړی وړی شوی دی . د افغانستان خلق د دیموکراتیک واحد گوند مرکزی کمیته د خلکو ریښتیانی قدرت اعلاموی . مونږ بوځل بیا د ربنتیانی دیموکراتیک عدالت په خاطر، د اسلام مقدس دین ته د احترام په خاطر اود ثورانقلاب د اهدافو د تطبیق په خاطر د افغانستان د خلکو د عادلانه ملی جهاد پرچم پورته کړی دی ."

ظاهراً د غه وینا په داسی وخت کښی خپره شوه چی امین لا د روسی قواوو په مقابل کښی په مقاومت بوخت وو ځکه چی د امین امنیتی گارد ترسپید و پوری د روسانو پرضد جگړه وکړه[۲] .

بالآخره د راډیو کابل اصلی خپرونه د شپی په ۲ بجو او ۴ دقیقو پیل شوه او د انقلابی شوراله خوایی یوه اعلامیه خپره کړه . په دغه اعلامیه کښی ،بی له دی چی د پیښی په هکله څه وویل شی ، ببرک کارمل د کمونیست گوند د مرکزی کمیتی د عمومی منشی،د انقلابی شورا د رئیس او د افغانستان د جمهور رئیس په توگه

وبلل شو. د غه راز اسد الله سروري چې امین باندی له ډ زوکید و وروسته یې روسانو ته پناه وړی و، او ویل کیږی چه د شوروی اتحاد په سفارت کښې اوسیده او سلطان علی کشتمند چې په زندان کښې و د انقلابی شوراد مرستیالانو په توګه معرفی شول. د انقلابی شورا نور غړی محمد اسلم وطنجار، عبد القادر( چې په زندان کښې و )او برید جنرال ګل آقاو سبودل شول.

له ذغه خبر نه تقریباً ۱۵ دقیقی وروسته د کمونیستانو د حکومت له خوا د غه اعلامیه خپره شوه:

"د افغانستان د یموکراتیک جمهوریت د افغانستان د د ښمنانو د تیری، مداخلی اوتحریکاتـود دوام او پراخیتیا له کبله او د ثور انقلاب د ګټو د خاوری تمامیت او ملی خپلواکی نه د دفاع اود سولی او امنیت د ساتلو په خاطر د شوروی اتحاد څخه د ۱۳۵۸ کال د دسمبر د میاشتی د ۵ نیټی د دوستی، ښه ګاونډ یتوب او همکاری د تړون پربنسټ د نظامی مرستی په ګډون د سیاسی، اخلاقی او اقتصادی سملاسی مرستی غوښتنه کړی. د شوروی اتحاد حکومت د افغانستان

دغه پیشنهاد منلی دی ."

له دی څخه تقریباً ۲۰ دقیقی وروسته دسهار په ۳ بجواو ۱۵ دقیقو د" انقلابی محکمی" له خوا دا لاندی اعلامیه خپره شوه :

" انقلابی محکمی حفیظ الله امین زمونږ د شریفو خلکوپرضد دهغه د جنایاتوله کبله په‌اعدام محکوم کړی . د دغوجنایاتوپه نتیجه کښی د ملکی اونظامی مامورینو اودغه راز د مذهبی رهبرانو، روشنفکرانو ، کارگرانو اوبزگرانو د استازو په گډون د افغانستان بو زیات شمیرشریف وطنوال وژل شوی‌دی . د محکمی‌حکم اجراء شوی دی ."

خود دغی " انقلابی محکمی" د ترکیب او صلاحیت په باب هیڅکله څه و نه ویل شول . وروسته بیاهم د کارمل اوهم د شوروی نطاقانو په دی خبره ټینگاروکړچی گواکی امین د افغانی قواو د عملیاتو په وسیلی‌له‌مینځه تللی‌دی . خو دا حقیقت هم د کابل اوسید ونکواو هم په کابل‌کښی دبهرنیوهیواد ونو د هغه وخت ټولو د یپلوماتانو ته معلوم دی چی د جدی د شپږمی نیټی

په عملیاتوکښې د هغه وخت د حکومت پرضد حتی یو تن افغانی عسکرهم ګډون نه درلود .

روسانوغوښتل داسې وښئی چی ګواکی دامین رژیم دافغانی قواو له خوا نسکورشویدی . په دی لړکښې د مسکوراډیو په خپلی یوی خپرونی کښې وویل :

" دا حقیقت چی امین افغانستان ته د شوروی پوځی قطعاتو د ننوتلو په وخت کښې وژل شوی یوائحی یوتصادف دی . د دغود وپیښوترمینځ کومه ځانګړی اړیکه نشته ."

یوبل روسی مبصر د هغو حقایقوپرضد چی په کابل کښې د روسی عسکرود عملیاتو په هکله بهرنیوهیوادونوته خرګند شوی وو په لا زیات قوت سره عکس العمل وښود :

" په دی خبره باندی چی ګواکی حفیظ الله امین د روسانو له خواوژل شوی دی زیات ټینګارکیږی.دا د روغ دی . امین د افغانانوله خوا د هغوپرګنود طاقت له خوا محکوم او اعدام شوی دی چی امین د هغو پرضد د ریډ وجسارت کړی و . د شوروی عسکرو قطعات د افغانستان په کورینو چاروکښې د لاس وهنی په خاطر

نه،بلکه د افغانستان حکومت سره د هغه‌هیواد د سرحد ونو امنیت په ساتلو کښی د موستی د پاره لیږل شوی دی ."

روسانو او د هغوی گوډ اگیانو پر افغانستان باندی د روسی پوځونو ښرگند برید د پټولو په خاطر د غه ډول زیاتی هلی ځلی وکړی خو د خپلو ښرگندونو د اثبات لپاره یی هیڅ ډول دلایل او اسناد په لاس کښی نلرل .

د روسانو له خوا د جدی د میاشتی د شپږمی نیټی په تیری کښی د روسی او د امین د رژیم د عسکرو او مامورینو د تلفاتو دقیق شمیر معلوم ندی ، خو د بهرنیو د پیاوماتانود تخمین سره سم ،په د غه عملیاتو کښی د روسی قواوو د وژل شوو او ټپی شووشمیرد پام وړ سبو دل شوی په داسی حال کښی چی د امین د رژیم د قواوو تلفات د روسانو په پرتله هم ډیر زیات وو.[۳]

د روسانود تابوتونو په مینځ کښی، چی وروسته د کابل له هوایی ډگرنه په شوروی الوتکو کښی هغه‌هیواد ته لیږدیدل ،یو تابوت د جنرال له مقام سره‌وړتشریفاتو سره ولیږدول شو . د سیاسی تحولاتو ځینی ښیړونکی

پدی عقیدی دی چی شایی نوموړی تابوت به د جنرال پاپوتین‌وو . لکه څنګه چی مخکښی وویل شول،پاپوتین ته ، چی د شوروی دکورینوچارو معین او د پولیسو جنرال وو ، وظیفه ورکړ شوی وه چی امین د اسی له مینځه یوسی چی خلک فکروکړی هغه په خپله افغانانو وژلی دی . خوپه دی کار بریالی نشو .

د پراودا ورځپاڼی د جدی د میاشتی‌په ۱۲ نیټه د اخبر خپورکړ چی پاپوتین‌د جدی په ۷نیټه مړشوی‌دی خو د دغه ۵۳ کلن روغ رمټ جنرال د مړینی علت او ځای یی څرګند نکړ .

په مسکوکښی د پاپوتین د مړینی په هکله‌د وه ډوله آوازی خپری شوی[۴] . یوه داچی هغه د تاج بیګ په غونډ ی کښی د امین پرماڼی باندی د روسی‌عسکرو د برید په ترخ کښی وژل شوی خو داموضوع څرګنده‌نه‌شوه چی په پوځی عملیاتوکښی‌د پولیسویوجنرال‌ته‌ولی‌د ګډ ون کولوحق‌ورکړشوی‌و . بله آوازه داوه چی له‌دی کبله‌چی پاپو تین بریالی نشو چی امین په کراره او د روسانو ګډ ون ته د پام اوښتوپرته ووژنی نو ځان یی په خپله

د انګریزانو پرمختګ، د د غود ووامپراطوریوترمنځ پرتوسېمود کنترول پرسر ( ستره لوبه ) رامینځ کړه . د غې لوبې د دوو استعماري طاقتونوترمنځ ۶۰ کاله دوام ومومند .

انګریزان چې جنوب خواته د تزاري امپراطوري له پرمختګ څخه ویریدلی‌وو پدې تکل کښې‌شول چې د روسانو د پرمختګ مخه ونیسي .

انګریزانو خو ځلې پر افغانستان باندې یرغل وکړ خو هر وار د افغانستان د توریالیوخلکو له کلک مقاومت سره مخامخ شول اوماتې‌ئې وخوړه . کله کله‌د دوی‌د دغو حملو هدف داوچه ګوندې دوی په افغانستان کښې د روسانو د پرمختګ یانفوذ مخه ونیسي . له بلې خوا تزاري روسی ته هم داموقع په لاس ورنغله چې‌افغانستان ته خپل عسکر راننه باسي .

روسانوپه هغه وخت کښې د خپلوګاونډ یوهیوادونو د سیولو لپاره داسې پلمې ورانديکولې چې یوپرمخ تللی او متمدن هیواد مجبور دی په سرحداتوکښې د خپلو ګټو او د تجارتي اړیکو د خوندي ساتلو لپاره پرخپلو هغوګاونډ یوباندې یوه اندازه لاس بری ولري چې

وواژه . دا امکان هم موجود دی چی ښایی نوموړی
په د هغه د ماموریت د ناکامی له کبله په خپله د روس
حکومت وژلی وی .

د غی پوښتنی ته چی د روس څخه د پوځی مرستی
غوښتنه د چاله خوا او په څه وخت کښی وشوه لا تراوسه
پوری هم کرملین د قناعت وړ ځواب نه دی پیدا کړی . د روس
حکومت افغانستان باندی د روسی عسکرو د یرغل
په د رشل کښی خپلو سفیرانو ته هدایت ورکړی چی باید
بهرنی حکومتونه افغانستان ته د روسی عسکرو ننوتلو په
هکله خبر کړی خو باید دا ونه وایی چی د وی د امین
رژیم نسکور کړی دی . په نوی ډهلی کښی د روس سفیر
یوری وانوستوف د جدی د شپږمی نیټی د شپی له نیما ئی
نه لږ څه مخکښی د هند د بهرنیو چارو د وزارت له
سکرتر ر. د. ستهی سره وکتل او ورته ویی وویل چی
روسی عسکر افغانستان ته لیږل شوی دی تر څو د
افغانستان له رژیم سره د "بهرنی یرغل او مداخلی" په
مقابل کښی مرسته وکړی . خود کود تا څخه چی په
جریان کښی وه یاد ونه و نه شوه[5].

د نړۍ په نورو هیوادونو کښې روسي سفیران و لــه تره کی سره د روس د د وستی اوسبه گاوند یتوب تړون او د ملګروملتو د منشور ۵۱ ماده پر افغانستان بانــدی د خپلوعسکرو د برید په برخه کښې د سند په توګه بیا ن کړل ۰

د ملګروملتود منشور په ۵۱ ماده کښې راغلــی دی چې : "که د ملګرو ملتو په یوه غړی هیواد باندی وسله وال برید وشی، نوموړی هیواد ذاتی حق لری چې د امنیت د شورا له خوا د بین المللی سولی او امنیت دساتلــی لپاره دلازمو تدابیرو تر نیولو له ځانه په ځانګری یـــا ډله ایزی توګه دفاع وکړی " خو د غه ماده د افغانستان په برخه کښې یواځی د روسانو د یرغل نه وروسته پــــه خپله د روسانو پرضد د تطبیق وړ وه ځکه چــــی د ا روسانو دی چې پر یوه ناپییلی او خلپواک هیواد باندی یی برید کړی او د روسانو له وسله وال برید نه مخکښــی پر افغانستان باندی د هیڅ یوه بهرنی هیواد لـه خوا تیری نه و شوی ۰

یوه بله عجیبه موضوع هم د بیر زرد روسانو پــــــه

خرگند ونوکښې ښکاره شوه : له یوی خوا روسانوځینې
هیوادونو ته وویل چې امین د جدی په پنځمه نیټه د
روسی پوځی مرستی غوښتنه کړی وه . اوله بلی خوا د
روسی عسکرو له یرغل وروسته پر امین دا تورولګول شو
چې غوښتل یې د جدی د میاشتی په ۸ نیټه "دانقلاب
ضد عناصرو " په ملګرتیا یوه کمونیستی ضد توطئه ترسره
کړی " . نوکه داسی وای بیا یې روسی عسکرولی رابلل،
روسی سفیرانو بیاپه ځینی نورو هیوادونوکښې وویل
چې دغه غوښتنه کارمل د جدی په شپږمه نیټه‌کړی وه .
که داسی وی،نو روسان په خپله اعتراف‌کوی چې د
امین د رژیم پرضد یې،چې کریملین دهغه حمایت‌کاوه
له یوه داسی شخص‌سره مرسته کړی ده چې نه یوازی
یې سیاسی او دولتی حیثیت نه درلود بلکه د
امین د رژیم له خوا دخاین په نوم غندل شوی و . او
برسیره پردی دا پخپله ښئی چه روسانو د یوبل‌هیواد
په داخلی چارو کښې لاس وهلی‌دی .

کارمل وروسته داسی دعواوکړه چې‌ګواکی دی
وروسته له دی چې په چکوسلواکیا کښې دافغانستان

له سفارت نه گوښه کړی شو، د روسی عسکرو له یرغل نه ډیر پخوا په پټه توګه افغانستان ته راننوتلی او د کمونیست ګوند اکثریت غړی یی د امین پرضد تنظیم کړی وو. د ه کابل ته په اصطلاح د راننوتلو په هکله په مختلفو مرکوکښی بیلا بیلی نیټی وښودلی[7]. په یوی مرکی کښی یی وویل چی د سنبلی په میاشت کښی، د امین له خواد تره کی له وژل کیدو نه مخکښی افغانستان ته راغلی او بیا یی په بل ځای کښی افغانستان ته د راتلو نیټه د عقرب د میاشتی آخروښود ه.

کارمل وروسته بیا د خپلو څرګند ونوپه ترځ کښی وویل چی افغانستان ته له راستنید وسره سم یی د کمونیست ګوند د مرکزی کمیټی او د انقلابی شوراد هغو غړو له اکثریت سره تماس نیولی وچی په رسمی توګه یی په حکومت کښی ګډون د رلوځو د ده ملګری[8] وو. نوموړی زیاته کړه چی د قوس د میاشتی په وروستوشپوورځو کښی د کمونیست ګوند د مرکزی کمیټی او د انقلابی شوراقاطع اکثریت پرامین باندی زور واچاوه چی د روس څخه د سملاسی پوځی مرستی غوښتنه وکړی او امین مجبورشو

چی د غه پیشنهاد ته غاړکیږدی[9]. د غه راز کارمل دعـوا وکړه چی د گوند د مرکزی کمیتی او د انقلابی‌شورا اکثر غړو د جدی د شپږمی‌نیټی‌نه مخکښی‌د امین د محاکمـه کولو په ترڅ کښی د هغه د اعدام فیصله وکړه اودی یی ( کارمل ) د گوند د مرکزی کمیتی د عمومی منشـــی د انقلابی شوراد رئیس او صد راعظم په حیث وټاکه[10].

که د یوی شیبی لپاره داسی فرض‌کړو چی رښتیـا کارمل د روسانو له تیری څخه پخواافغانستان ته راغلی اوبیایی د کمونیست‌گوند د مرکزی کمیتی او انقلابی‌شورا قاطع‌اکثریت د امین پرضد تنظیم‌کړی نوولی‌یی‌د روسانو د برید نه وروسته خپل د غه ټول ملگری په سملاسی توگه بند یان کړل.

بل دا چی که کارمل‌د جدی د شپږمی‌نیټی‌نه مخکښی دگوند د مرکزی کمیتی د عمومی منشی اود انقلابی شورا د رئیس په توگه ټاکل شوی و نو بیا ولی کابـــل راډیو د جدی‌د شپږمی‌نیټی‌د شپی‌په نیمایی‌کښی دا خبرخپورکړ چی " د افغانستان د د یموکراتیک گوند د مرکزی کمیتـی سیاسی بیرو نن غونډه وکړه او ببرک کارمل یی‌دگونـد د

عمومي منشی په حیث وټاکه. د غه راز د افغانستان انقلابی شورا په خپله ننی غونډه کښی ببرک کارمل د د غی شورا د رئیس په توګه وټاکه ."

یوی روسی جریدی ولیکل چی د ۱۹۷۹ کال د دسمبر د میاشتی په اوړد و کښی امین دګوند د رهبری د "سالموطاقتونو" د ټینګار له امله څلورځلی په کابل کښی د شوروی سفیر څخه غوښتنه وکړه چی باید روسی عسکر افغانستان ته راولیږل شی . خو کارمل د جدی د میاشتی په نیمایی کښی وویل چی امین د مرستی لپاره د شوروی محد ودو قطعاتو غوښتنه نه ده کړی . وروسته بیایی د دلوی په میاشت کښی وویل چی امین دګوند د مرکزی کمیتی او د انقلابی شورا د اکثریت له خوا مجبور شو په خپله دا غوښتنه وکړی . او زیاته یی کړه چی د غه غوښتنه زماله شخصی خبرتیانه پرته ترسره شوه .

په دی ډول دوی ونکړای شول دا خبره جوته کړی چی افغانستان ته د روسی عسکرو د راتګ غوښتنه امین کړی وه او که د هغه له خبرتیا پرته شوی وه .

له بلی خوا که دکمونیست ګوند د مرکزی کمیتی او د

انقلابی شورا اکثـــرغړی د امین په خلاف وو نوولی یی هغه د مخالفو رایو په څرگند ولو سره له قدرت نه گوښــه نکړ؟ ښایی چی هغوی د امین د پولیسی او استخباراتی کلک کنترول له کبله د هغه څخه ویریدل خوکه د اسی وه نو کارمل څرنگه کولی شول چی په کابل کښی په پټه توگه فعالیت وکړی او دگوند او انقلابی شورا مشرتابه د امین پر خلاف تنظیم کړی او بیاکه کارمل د امین پرضـــد د اکثریت په راغونډولو بریالی شوی و نو ولی د دغـــــه اکثریت له خوا د روسی عسکرو له غوښتنی نه خبرنـــه وو .

په دی توگه روسانو او د هغوی گود اگیانو هغه کوله چی له دغو ضد او نقیض څرگند ونو او وتوبوتو سره پـــــر افغانستان باندی د روسی عسکرو د تیری حقایق بـــل ډول وښئی او د غه انسانی ضد عمل ته مشروعیت ورکړی اوخپله له خیانتـــه ډکه څیره د تزویر او ریااو چل ول ترغولونکـــی پرد ی لاندی پټه کړی .

روسانوچی په خپل مادی او نظامیقدرت ډ اډه وو ، فکرکاوه چی کولی شی په کابل کښی د یوه گوډ اگـــی حکومت په رامینځ ته کولو او له خپلو هماغه غیرانسانــــی

لا روچارونه په گته اخیستلو سره چې د منځنی آسیاا و د ختیځی اروپا د خلکو په مریی کولو کښې یې ځینیکار واخیست ، د افغانستان خلک هم د ی ته اړکړی چې د دوی غوښتنوته غاړه کیږدی او په دی توګه خپل استعماری هدف ته چې د هند د سمندرګرموا وبوته رسید ل او د خیلج د سیمې د تیلوپرشتمنوزیرمو باندی لاس بری د ی ځان یوګام نژدی کړی . له همدی کبله یې پر افغانستان باندی وسله وال تیری وکړ . او دادی اوس د د غه تیری له پیل نه پوره اوه کاله تیریږی .

## د یرغل نه وروسته

روسانو د دغو اووکلونو په اوږدو کښې د خپلو هدفونو د ترلاسه کولو په لار کښې زمونږ د خلکو پرضد هیڅ یو ول ظلم اوزیاتی ونه سپماوه . دوی په دغه موده کښې د ناریناو ښځو ځوانانو اوسپین زیرو اومعصومو کوچنیانو په ګډو ن زمونږ تقریباً له یو ملیون تنونه زیات بی ګناه وطنوال شهیدان کړل . کلی اوکورنه یې وران کړل سمسور باغونه اوکروندی یې په شاړو دښتو بد ل کړل . زمونږد

هیواد لرغونی منقول آثاریې په غلا روسی ته یوړل او غیرمنقول آثاریې چې زمونږ د و یاړلی تاریخي اوپرتمینو مد نیتونو ژوند ی نښې نښانې وی د خپلو وحشیانه بمباریوسره خاوری ایری کړل ٠

فلیکس ارماکورا د ملگرو ملتود موٴسسی د بشری حقوقود کمیټې مامور په افغانستان کښې د انسانی حقوقو د اوضاع په هکله د خپل یوه رپوټ په ترڅ کښې وایي چې په افغانستان کښې د بشری حقوقونه سخت تیری روان دی ٠ روسان د افغانستان د مجاهد ینو د مقامت د ټکولو لپاره په کلو باندی د ناپالم بمونو او کیمیاوی وسلو نه چې استعمال یې د بین المللی تړونو له مخې بند شوی دی ، کار آخلی ، له سیاسی بند یانوسره ډیر ناوړه او غیرانسانی چلند کوی او د ډیرو انسانی ضد وسایلو او لارو چاروسره یې شکنجه کوی ٠ نوموړی د مثال په توگه په خپل ریوټ کښې تخمین کړیدی چې په افغانستان کښې یواځې د ۱۹۸۵ کال په نهو میاشتو کښې د روسانود بمباریواو نورو پوځی عملیاتو په اثر څه ناڅه ۳۲۷۵۵ تنه غیر نظامی کسان وژل شوی ، په

۷۴ کلو کښې ۱۸۴۳ کورونه وران شوی او ۲۱۸۳ څاروی له مینځه تللی دی.

پر افغانستان باندی د روسانو له یرغل سره د هیواد د مسلمانواو میړنیو خلکو سپڅلی جهاد چی د تره‌کی‌او امین گوډاگی رژیم پرضد پیل شوی وو لا پسی غښتلی شو او د روسانو د غو ټولو وحشیانه عملونو زمونږ د مجاهد ومسلمانو خلکو پرټینګ ایمان اوکلکه اراده هیڅ ډول اغیزه ونکړه. لوید یزو هیوادونو د نړی د یوه وینی څښوونکی ستر قدرت په مقابل کښی د افغانستان د مجاهدینو مقاومت ته د شک په سترګه کتل. هاغه ترد ی حده چی محافظه کارو ډلو د افغانستان مسئله یوپای ته رسیدلی عمل وباله.

د ملګرو ملتونو عمومی ټولنی او د امنیت شورا، اسلامی کنفرانس، د نا پییلو هیوادونوغورځنګاود اسی نورو سازمانو د د غو اتو کلونو په اوږد و کښی په افغانستان باندی د روسی عسکرو یرغل په واروارغندلی اود روسی قواوو سملاسی اوله قید او شرط پرته وتلو غوښتنه یی کړیده خو سره د دی د غو ټولو غوندوا و

د بیلا بیلوعوا ملوله کبلمستونزو سره مخامخ د ی . نوکله به
چی ئی په د ی توګه یوه سیمه ترلاسه کړه بیابه‌ئی لــــه
همد غی پلمی‌سره بلی‌سیمی ته‌لاس‌غزاوه اوپه‌د ی ډو ل
ئی په سیمه کښی خپل استعماری هدف ته ځان‌نژد ی
کاوه .

د عمومی‌لومړی جګړی له پای ته رسید ونه وروستــه
په سیمه کښی ځینی‌مهم تحولا ت رامینځ‌ته شــول . په
روســی کښی کمونیستانو قد رت غصب کړاوپه افغانستان
کی د امیر حبیب الله خان له مرموزه وژل کید ونه پس د
هغه ځوی امیر امان الله خان پاد شاهی ترلاسه کړی
وه . امان الله خان د افغانستان اوبریتانیــی‌ترمنځ د
د ریمی جګړی نه وروسته د افغانستان پوره خپلواکـــی
تر لاسه کړه .

د د غو پیښو سره جوخت د منځنــی آسیاپــــــه
هیواد ونو کښی لینین د تزاری حکومت‌کړنلاری تـــه د
کمونیستی شعارونو په چوکاټ‌کښی نوی بڼه ورکــــړه
کمونیستانو قد رت ته له رسید ومخکښی ژمنــه کــړی وه
چی د کمونیستی انقلاب په بریالی کید و سره به پــــه

سازمانونوتراوسه‌په د ی هکله په عملی توګه کوم اغیزمن اقدام نه د ی کړی چه د روس حکومت مجبور کړی د افغانستان نه خپل عسکرو باسی .

باید په ډیره خواشینی سره داهم ووایوچی زمونږ داسلامی جهاد په صفونوکښی تریوی زیاتی مود ی‌پوری د ځینو عواملو له کبله نفاق اوخپل منځوی شخړی دوام د رلود . د غه کار زمونږ جهاد زیاتو ستونځو او خنډ ونوسره مخامخ کړی وو . که څه هم نن سبا د هیواد په داخل کښی د غه راز بی اتفاقی ترزیاته حده پوری زمونږ د مجاهدینوتر منځ رفع‌شوید ه خوزمونږ د مجاهدینو په سیاسی او رهبری کدرونوکښی لا هم د اتفاق او اتحاد لپاره اړتیالید ل کیږی .

زمونږ نومیالیو مجاهدین ته ښایی‌چی پر افغانستان باند ی د روسی عسکرو د اوومی کالیزی د غند نی په مناسبت په د ی حساس فرصت‌کښی د اسلام د مبین د ین د ژغورونکو لا رښود نو په رڼاکښی‌سره‌یوموټی شی او د قرآن عظیم الشان د د غه مبارک آیت څخه په پیروی چی وَاعْتَصِمُوْ بِحَبْلِ اللّٰهِ جَمِيْعاً وَلاَ تَفَرَّقُوْا په

بشپړ وحدت او يووالي سره دګډ ملحد دښمن پرضد خپل سپيڅلي جهاد ته دوام ورکړي او په دې توګه د لوی خدای رحمت تر لاسه کړي .

مونږ د پاک خدای جل علی شانه مرستی باندی په پوره ايمان او د افغانستان د مسلمانو مجاهدینو پر کلک ايمان او ارادی باندی په پوره باورسره وايو چی هغه ورځ لری نه ده چی روسان په تېيت سراو شرميدلي بنه زمونږ پاکه خاوره خوشی کړی او په افغانستان کښی د الهی عدل حکومت ټينګ شی .

نَصرٌ مِنَ اللّٰهِ وَفَتْحٌ قَرِيبٌ

## مـآخذ :


۱ـ د لوید یزوږیوا د نواستخبا راتی‌ا دا روله ماموریـنـو سره مرکه،ها نری برا د شـر،د افغانستا ن اوشوروی اتحـادپه کتاب کښی، ۱۷۵ مخ ،د چـاپ کـال ۱۹۸۵ م

۲ـ برا د شر، ۱۸۰ مخ، بـهرته د یوزیا ت شمیرسفا رتونـو دپاره د امریکا د بـهرنیو چارو د وزارت تلگرام.

۳ـ په کابل‌کښی پخوانیو ډیپلوما تانوسره مرکـه، برا د شـر، ۱۸۲ مخ .

۴ـ په مسکو کښی د هغه وخت د ډیپلوما تا نو سره مرکـه برا د شـر ، ۱۸۳ مخ

۵ـ له‌نوی د هلی نه د فرانس پرس د خبر رسولوآژانـس ریپوټ د ۱۳۵۸ کال د جدی میاشتی اوومـه نیټـه.

۶ـ " د شوروی له خوا پر افغانستان باندی یرغل" ، دانګلستان د بـهرنیو چارو اوکامنو یلـت دادا ری د ۱۹۸۰ کال سند.

۷ـــ (الف) کابل راډيو د ۱۳۵۸کال د جدی ۱ ۲نیټه.

(ب) کـــرنټ ، هـندی مجله د ۱۹۸۰کـــــا ل

د فبروری ۱۶ نیټـــه.

(ج) د رشپیگل ، دلوید یـځ آلمان د ها مبـــورگ

ښار مجله،د ۱۹۸۰ کال د مارچ ۳۱ نیټه.

۸ـــ کـــرنټ ، د ۱۹۸۰ کال د جنوری ۱۶نیټه.

۹ـــ (الف) دهند پټریاټ ورځپانه د ۱۹۸۰کـــــا ل

د فبروری ۷ نیټه .

(ب) کابل راډيو د ۱۹۸۰ کال د جنوری ۱۱نیټه.

۱۰ـــ د پټریاټ ورځپانه د ۱۹۸۰کال د فبروری ۷نیټه.






منځنی آسیاکښی د تزاری روس تر تسلط لاندی ټول
هیوادونه وکړای شی چی په آزاده توګه خپل سرنوشت
وټاکی . خوپه روسیه کښی د بلشویکی حکومت له مینځ
ته راتګ وروسته د ازبکانو او تاجیکانو د استقلال غوښتلو
غورځنګونه د ۱۹۱۸ کال څخه د شلمی لسیزی ترلومړیو
کلونو پوری په ډیر وحشت او د غیرانسانی لاروچارونه
په ګټه اخیستلو سره وټکول شول . روسی کمونیست رژیم
د ازبکانو او تاجیکانو د غورځنګو له ټکولو وروسته د
بخارا په بیا نیولو لاس پوری کړ .

په افغانستان کښی د امیر امان الله خان انګریزی
ضد حکومت شتوالی روسانو ته د منځنی آسیا په اسلامی
هیوادونو کښی د کمونیستی استعماری هدفونو د ترسره
کولولپاره ښه موقع برابره کړی وه ځکه چی د امانی حکومت
انګریزی ضد ماهیت، روسان په دی ډاډه کړی وو چی
انګریزان به د دی فرصت ونه لری چی د افغانستان لاری
د وی ته ستونزی اوخنډونه پیداکړی .

روسانو د خپلو راتلونکو استعماری غوښتنو د ترسره
کولولپاره د دغه فرصت نه ګټه واخیسته او د امانی

حکومت سره یې د همکارۍ اوښه کاوند یتوب
ترونونه لا سلیک کړل او یوه اندازه نظامي
او اقتصادي مرسته یې هم د افغانستان دولت
ته ورکړه . روسان په دې توګه بریالي
شول په بخارا او د منځنۍ آسیا په نورو
سیمو کښې اسلامي اولسي غورځنګونه وځپوي
او د غې سیمې هیوادونه د خپلې امپراطورۍ
تابع کړي .

د امیر امان الله خان د سلطنت له
نسکوریدو وروسته بیا د محمد ظاهر شاه د
سلطنت د دورې تر نیمائي یعنې د محمد داود
ترصدارت پورې د افغانستان او روسي ترمنځ
اړیکې سړې پاتې شوې .

د محمد داود د حکومت په دوره کښې د ګاونډ
هیواد پاکستان سره په اړیکو کښې ډیر زیات
تاو اوتریخوالی منځ ته راغی . محمد
داود په دې تکل کښې شو چې د لوديزې

نړۍ : په تيره بيا د امريکا څخه اقتصادی
او پوځی مرستی ترلاسه کړی ۰ خو امريکا
د دی کارلپاره له محمد داود څخه وغوښتل
چی په لومړی سرکښی خپلی اړيکی د
پاکستان سره ښی کړی ترڅوو کولای شی
امريکايی مرستی په تيره بيا د افغانستان
د پوځ لپاره د اړتيا وړ وسلی لاس ته راوړی
ښکاره وه چی محمد داود حاضر نه و د ی غوښتنی
ته غاړه کيږدی او د مرستو په راجلبولو کښی
ناکام شو نوروسيی ته يی مخه کړه ۰ او روسان
چی له زيات وخت راهيسی د اسی يوه
فرصت ته په تمه وو ، د محمد داود د
غوښتنو ته يی په ورين تندی مثبت ځواب
وواييه د افغانستان سره يی د نظامی
اقتصادی ، تخنيکی او فرهنگی بيلابيلو برخوکښی
تړونونه لاسليک کړل ۰ روسی مشاورين او سلاکاران کابل

ته راغلل او بو زيات شمير افغاني محصلين دلـو ړو نظامي او مسلكي زده كړو لپاره روسي ته وليږل شول ، په حقيقت كي افغانستان په دي دوره كښي داقتصادي او نظامي چارو له پلوه په روسي باندي متكي شو او كمونيستي روسيه خپلو پراختيا غوښتونكوهدفونو تـه د رسيدو په لار كښي ډير زيات مخكښي شوه .

روسي جاسوسانو چي د مشاورينواو سلاكارانو پـه نوم افغانستان ته راغلي ؤ د افغانستان د ځوان نسل په مينځ كښي يي د خپلو پلورل شوو افغاني جاسوسانو له لاري د كمونيستي افكارو او نظرياتو په خپرولـو لاس پوري كړ.

د افغانستان بوشمير بي خبره او احساساتـي ځوانان د روسي جاسوسانو په كمونيستي لوموكښي ونښتل او په دي توګه پر افغانستان باندي د روسانـو د نظامي يرغل بنسټ كيښودل شو. د اساسي قانـون دلسيزي په اوږدو كښي روسانو د خپلو استازو او جاسوسانو په مرسته د دغه نوي نظام د بدنامولـو

د پاره ډېرې هڅې وکړې ترڅو چې په افغانستان کښې سیاسي حالات په خپله ګټه بې ثباته کړي ۰

د محمد داود په مشرۍ د سلطنت پرضد د ۱۳۵۲ کال کودتا د پرچم د غړیو په مرسته سرته ورسیده ۰

دا چه د افغانستان د غو کمونیستان د خپلو ستر و فعالیتونو الهام د مسکوڅخه اخستیل یوه ثابته شوې خبره ده ۰ د ۱۳۵۲ کودتا په نتیجه کښې، شوروی اتحاد د خپلو ناوړو استعماري اهدافو په لوربوستر ګام پورته کړ ۰ دوی په دغه دوره کښې زیاتې هلې ځلې وکړې چې د افغانستان کورنی او بهرنی سیاست ترخپلې اغیزې لاندې راولي او دغه هیواد د خپلو اقمارو په ډله کښې ودروي ۰ خو محمد داود هغسې چې فکر کیده د دوی د پراختیا غوښتونکو هدفونو لپاره مناسب نه وو نود ثور په اومه نیټه ئې د خپلو نظامي جاسوسانو په وسیلې د داود خان حکومت نسکوراود نورمحمد تره کی په مشرۍ ئې خپل ګوډاګی حکومت رامینځ ته کړ ۰

کله چې په افغانستان کښې کمونیستان د روسانو په مرسته د نظامي کودتا له لارې قدرت ته ورسیدل

روسانو، د دی لپاره چی په افغانستان کښی د خپلو اعمالو په ترسره کولو کی آزاد لاس ولری ترټولو مړی د هغو ملی او اسلامی مشرانو او شخصیتونو په وژلو، بندی کولو او تهدیدولو لاس پوری کړ چی له هماغه پیل څخه یی د روسانو سره نه پخلاکیدونکی مخالفت درلود . له بلی خوا ، کمونیستانو د جعلی غونډو د جوړولو له لاری هڅه وکړه چی نړیوالو عامه افکارو ته وښئی چی ګواکی د وی سره د هیواد د خلکو ملاتړ شته او د غه راز د دوی په وینا د غه انقلاب د خلکو په غوښتنه او ملاتړ ترسره شوی دی . په حقیقت کښی د افغانستان کمونیستانو د خلکو په وژلو او ځورولو کښی د کمونیستی روسی له کړنو نه هم زیاتی وکړ . خلقیانو او پرچمیانو د تیپل شوی ګوډاګی رژیم د مخالفینو وژلو او تړلو په لړ کښی نه یوازی د افغانستان بوزیات شمیر روحانی او ملی شخصیتونه شهیدان کړل بلکه د کمونیستی رژیم د انارشی او بی نظمی نه په ګټه اخستنیلو سره یی خپل تربرونه او شخصی مخالفین هم د انقلاب ضد عناصرو په نامه ووژل .

..... وذكرهم بايام الله .....



د جدی ټیرمه

# دالهی ازموینی ورځ

بیه ۱۰ ا



# دجلدي دشپږمي کرغيږني ورځې دا ووميکالـــيزې دغونډني په مناسبت


دافغانستان دجهاد دثقافتی شوری دخپرونوڅخه

| | | |
|---|---|---|
| لیکوال | : | صاحب جان شکیب |
| مرتـــــب | : | محمدشفیع رحمانزی |
| د چاپ شمـــیر | : | ۱۰۰۰ |
| عمومی شمـــیر | : | ۱۱۲ |
| خصوصی شمـــیر | : | ۱۱ |
| دمخونو شمــــیر | : | ۴۳ |
| دمخونو سایـــز | : | ۱۸×۱۲ |
| دچاپ نیـــــته | : | مرغومی ۱۳۶۵ |
| تایپ از | : | محمد مسلم عمر |

# یادوونه

د دغه اثر د لیکلو مهم هدف په لنډه توګه په ۱۳۵۸ کال کښې پر افغانستان باندې د روسي عسکرو د تیرې په شپو ورځو کښې په کابل او روسیې کښې د روسي مشرانو او ایجنټانو د هلوځلو ښودل دي چې د هغو په نتیجه کښې د حفیظ الله امین حکومت له مینځه لاړ او د کارمل تر مشرۍ لاندې یو بل ګوډاګي حکومت مینځ ته راغی.

د غه راز په دې اثر کښې افغانستان ته د روسي عسکرو د راليږلو د غوښتنې په باب د روسانو په پلمو او چل ول باندې رڼا اچول شویده. د اثر په لوموړۍ برخه کښې د افغانستان د نیولو لپاره د روسانو تاریخي هلې ځلې هم په لنډه توګه څیړل شوې دي.